الله الله الله

# د جعلي سند یا شهادتنامی جوړولو شرعي حکم...    تحقيقي مقاله.......

تحرير:

مولوي احمد علي نقشبندي عفی عنه

یادونه: د انساني طاقت او وس تر وسه تحرير د لفظي غلطيانو ښخه پاک دی بیا هم د اهل علمو ښخه هیله ده کومه قابل اصلاح غلطي وګوري په ښودلو يی عندالله مأجور یم.

د اړیکی شمیره: 0093749656274

اَلْحَمْدُ لِلَّهِ وَكَفٰى وَسَلَاْمٌ عَلَى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى اَما بَعْد:

اَعُوْذُ بِاللّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيم بسم الله الرحمن الرحيم

فَلْيُؤَدِّ الَّذِىْ اؤْتُمِنَ أَمَانَتَهُ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهُ [بقرة :٢٨٣]

قالَ رسولُ الله صلى الله عليه وسلم: آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ، إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَان.[رواه البخارى]

## موضوع:جعل سازي

جعل سازي يوه لويه دوکه او ناجائز عمل دى چې دا کار د مختلفو اشخاصو له طرفه په مختلفه طريقه ترسره کيږي.

د بيلګې په توګه دوکاندار په اشياء د خورد و نوش کې دوکه او جعل کوي نور خلک بيا په بله توګه دا کار ترسره کوي خو دلته زموږ مقصد هغه جعل سازي ده کومه چې تر ټولو جعل سازيانو څخه لويه ورته ويلى شو ځکه دا جعل سازي په خپل وجود کې ډيرو قبايحو لره جامع ده او هغه د جعلي سند يا شهادت نامې جوړول دي.

جعلي سند جوړول د ډيرو مقاصدو لپاره کيږي خو دوه يې عمده دي.

اول مقصد: د جعلي سند په ذريعه مزيد تعليم حاصلول

دوهم مقصد : د جعلي سند په ذريعه وظيفه اخيستل

جعلي سند باندى تحصيلِ علم ځان ته دوکه ورکول دي هغه داسى چې عند الله د سند هيڅ حيثيت نشته که يو څوک عند الله عالم وي نو که هغه سند لري او که نه دى عالم دى او که عندالله څوک عالم نه وي نو که ډير سندونه جوړ کړي هيڅ فائده نه لري بل دا چې که يو څوک د

جعلي سند په وسيله د تعليم داسی مرتبه حاصلول غواړي چی ډير وخت او زيار ته اړتيا لري نو د داسی کس علوم به سطحي او کمزوري پاته شي او دا ځان ته په خپله دوکه ورکول دي .

که چيرته د جعلي سند په واسطه کوم څوک وظيفه واخلي نو دا هم دوکه او فراډ دی، سوال دا دی چی د داسی کس د معاش څه حکم دی چی وړتيا نه لري او په دوکی سره يی وظيفه اخيستی ده...؟

د دی سوال ځواب به وروسته بيان کړو اول ګورو چی جعلي سند جوړولو کی کوم قبايح دي ...؟

جعلي سند جوړول شهادت زور ، دوکه ، خيانت ، دروغ ، او د بل حق خوړل دي چی دا ټول ناروا او ناجائز کارونه دي چی تفصيل يی داسی دی..

0-جعلي سند جوړول شهادتِ زور[ د دروغو ګواهي ورکول] دي چی دا کار اشدِ حرام دی کومه اداره چی جعلي سند يا شهادت نامه ورکوي هغوی در اصل دا لويه ګناه کوي .الله تعالی د ايت په يوه حصه کی فرمائي...

فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَٰنِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزور [سورة الحج /30]

ترجمه:د بوتانو له نجاست څخه ځان وساتۍ او د دروغو له ګواهۍ څخه هم ځان وساتۍ"

الله تعالی د دروغو ګواهي شرک پسی متصل ذکر کړی ده نو معلوميږي چی دا څومره لويه ګناه ده ځکه خو رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائي چی د دروغو ګواهي ورکول عظيم ترينه ګناه ده.

د حضرت ابو بکره رضی الله عنه څخه روایت دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمایل آیا زه تاسو ته په لویو ګناهونو کی د لوی ترینه ګناهونو خبر در نه کړم...؟ دری ځله یې داسی پوښتنه وکړه.

موږ اوویل ولی نه د الله رسوله ضرور یې خبر راکړه نو وی فرمایل چی د الله سره شرک کول، د والدینو نافرماني کول دبیان په وخت هغه تکیا وهلی وه نو کیناست او بیا یې اوفرمایل چی دروغ ویل او د دروغو ګواهي ورکول او دا خبره یې دومره زیاته تکرار کړه چی موږ دا ارمان وکړ چی کاش نور چپ شي( ستړی شو).

عن أبي بَكْرَةَ -رضي الله عنه - عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه قال» :أَلا أُنَبِّئُكم بِأَكْبَرِ الْكَبَائِرِ؟ -«ثَلاثا -قُلْنَا :بَلى يا رسول الله، قَالَ» :الإِشْرَاكُ بِالله وَعُقُوقُ الوالدين، وكان مُتَّكِئاً فَجَلس، وَقَال :ألا وَقَوْلُ الزور، وَشهَادَةُ الزُّور«، فَما زال يُكَرِّرُها حتى قُلنَا :لَيْتَه سَكَت.[متفق عليه ]

قرآن مجید کی الله تعالی د مسلمان په صفاتو کی یو اهم صفت دا هم بیان کړیٔ دی چی مسلمان د دروغو ګواهي نه کوي فرمایی..

والذین لا یشهدون الزور و اذا مرو باللغو مرو کراما [سوره الفرقان]

ترجمه:او هغوی [مؤمنان] د دروغو ګواهي نه ورکوي او د لغویاتو څخه ځان ساتي.

جعلي سند جوړول د شهادت زور په حکم کی راځي

1 - جعلی سند جوړول دوکه ده او دوکه کول حرام کار دی

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النَّجْشِ. (رواه البخاری)

ترجمه :ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی فرمایي چی نبی صلی الله علیه وسلم د(فریب) دوکه کولو څخه منعه کړی ده.

په یو بل روایت کی راغلي دی چی چا دوکه وکړه هغه زموږ څخه نه دی،

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى صُبْرَةِ طَعَامٍ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهَا فَنَالَتْ أَصَابِعُهُ بَلَلًا فَقَالَ مَا هَذَا يَا صَاحِبَ الطَّعَامِ قَالَ أَصَابَتْهُ السَّمَاءُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ أَفَلَا جَعَلْتَهُ فَوْقَ الطَّعَامِ كَيْ يَرَاهُ النَّاسُ مَنْ غَشَّ فَلَيْسَ مِنِّي وفی روایة فلیس منا" (رواه الترمذی والمسلم)

ترجمه : د ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم د غلی پر یو ډیري تیریدو نو لاس يي ور داخل کړ ،ګوتی يي لمدی شوی نو هغه صلی الله علیه وسلم د غلی څښتن څخه وپوښتل چی دا څه دي [دا ولی]...؟؟ هغه وویل چی دا د باران د وجی لامده شو

هغه صلی الله علیه وسلم وفرمایل آیا تا دا لمده حصه بره کوۍ نه شوه چی خلکو کتلی وه نو وی ویل چا چی دوکه وکړه هغه زما څخه نه دی.

او بل روایت کی دي چا چی دوکه وکړه هغه زموږ څخه نه دی .

یو بل حدیث شریف کی راغلي دي چی دوکه باز ته به د قیامت په ورځ د دوکه بازانو خاص بیرغ ورکول کیږي چی خلک به يی پری پیژنی چی دا هغه دوکه باز دی.

عن ابن عمر رضي الله عنهما قال :قال رسول الله صلى الله عليه وسلم" إذا جمع الله الأولين والآخرين يوم القيامة يرفع لكل غادر لواء فقيل هذه غدرة فلان بن فلان؛ (رواه البخارى والمسلم باختلاف يسير)

ترجمه : د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمایل :هر کله چی الله تعالی د قیامت په ورځ مخکیني او وروستني ټول خلک را جمع کړي نو بیا به د هر دوکه باز لپاره یو (خاص) بیرغ پورته کړي او وه به ویل شي چی دا د پلانکي چی د پلانکي ځوی دی د هغه غدر او دوکه د ه.

۲ -دغسی جعلی سند جوړول د نظام او اهلو خلکو سره خیانت هم دی هغه داسی چی پر کوم جعلي سند چی دا کس وظیفه اخلي نو د وړ کس سره خیانت دی ځکه چی د وړ کس مخه ونیول شوه او یو نا اهله کس مقرر شو چی د نظام د کمزورتیا سبب ګرځي .

”لا اِيمانَ لِمَنْ لا أ مانةَ لَه، وَلَا دِينَ لِمَنْ لَا عَهْدَ لَه [سنن بیهقی ]

ترجمه":چا کی چی امانت داري نه وي هغه کی ایمان هم نشته او څوک چی د معاهدی پابندي نه کوي د هغه دین نشته"

او الله تعالی هم قرآن مجید کی په متعددو ځایونو کی د امانت دارۍ تاکید کړۍ دی د باري تعالی ارشاد دی:

فَلْيُؤَدِّ الَّذِیْ اؤْتُمِنَ أَمَانَتَهُ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهُ[بقرة: ۲۸۳]

ترجمه”:نو څوک چی امانت دار جوړ کړل شو هغه ته پکار دي چی امانت ادا کړي او د خپل رب څخه ویریږي “

دغه ایت څخه معلومیږي چی امانت دار به هغه څوک وي چی تقوا او د خدای تعالی څخه بیره ولري او دا چی امانت د ایمان علامت ګرځول شوی دی خاین باره کی د بی ایمانی وضاحت شوی دی.

۳-خیانت د منافق نښه هم ده لکه دغه حدیث کی یی چی صراحت راغلی دی.

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو ، أَنّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا، وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا إِذَا، اؤْتُمِنَ خَانَ، وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ"، (رواه البخاری والمسلم)

ترجمه :عبد اللَّه بن عَمْرو څخه روایت دی چید الله نبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوفرمایل څلور عادتونه چی چا کی وي نو هغه پوخ منافق دی او چا کی چی د دغو څلورو څخه یو عادت وو نو هغه کی بیا د منافقت یوه نښه ده ترڅو چی دغه عادت  ترک نه کړي هغه څلور نښی دا دي کله چی امانت دار وکرځول شي نو خیانت کوي، په خبرو کی دروغ وایی، او کله چی چا سره وعده وکړي نو پوره کوي یی نه ،او جنګ کی ښکنځل کوي.

په یو بل روایت کی راغلي دي چی رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د خیانت څخه پناه غوښته...

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُوعِ فَإِنَّهُ بِئْسَ الضَّجِيعُ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخِيَانَةِ فَإِنَّهَا بِئْسَتِ الْبِطَانَةُ .(رواه ابو داود)

ترجمه:ابوهريره رضی الله عنه وايي چی رسول الله صلی الله علیه وسلم به دا سی دعا غوښتله ای الله ماته د ولږی څخه پناه راکړه ځکه چی دا ولږه

بد ملګرۍ دی، او زه پناه غواړمه د خیانت څخه ځکه دا ډیر بد پټ صفت دی.

۴- جعلی سند جوړول دروغ ویل دي چی حرام هم دي او د باري تعالیٰ د لعنت سبب هم ګرځي لکه په قرآن مجید کی چی راغلي دي.

"فَنَجْعَلْ لَّعْنَةَ اللّٰهِ عَلَى الْكَاذِبِيْنَ) '' [سورۂ آلِ عمران :۶۱ ]

ترجمه"لعنت د وکړي د الله په دروغجنو "

۵-دروغ د تمامو ګناهونو مور ده چی انسان تباهۍ ته رسوي لکه لاندی حدیث کی چی راغلي ...

''إِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِيْ إِلَى الْفُجُوْرِ، وَإِنَّ الْفُجُوْرَ يَهْدِيْ إِلَى النَّارِ، وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَكْذِبُ حَتّٰى يُكْتَبَ عِنْدَ اللّٰهِ كَذَّابًا)'' [صحیح البخاری]

ترجمه:"بی له شکه دروغ د بدۍ لاره ښيي او بدي دوزخ ته رهنمائي کوي او انسان مسلسل دروغ وايي تردی چی د الله په نزد کذّاب [لوی دروغجن] ولیکل شي "

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کی دروغ ویلو ته لوی خیانت ویلی، خیانت په خپله ډیر مبغوض عمل دی بیا چی لوی هم ورته او ویل شي نو قباحت يې نور هم زیات شي حدیث ملاحظه کړئ.

کَبُرَتْ خِيَانَةً اَنْ تُحَدِّثَ اَخَاکَ حَدِيْثًا هُوَ لَکَ بِهِ مُصَدِّقٌ، وَاَنْتَ لَهُ بِهِ کَاذِبٌ'' [سنن ابی داود]

ترجمه"دا یو لوی خیانت دی چی ته خپل ورور ته داسی خبره وکړی چی هغه تا ریښتونۍ وګڼي او ته ورته دروغ وایی،

دروغ ویل د منافقت نښه هم ده لکه لاندی حدیث کی چی د منافق نښی بیان شوي هغی کی یوه نښه دروغ ویل هم دي..

"عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ، إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ." [رواه البخاری]

ترجمه":د حضرت ابو هریره څخه روایت دی چی رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوفرمایل چی د منافق دری نښی دي هرکله چی خبری کوي نو دروغ وایی،کله چی وعده وکړي خلاف یی کوي،او هرکله چی امین وګرځول شي نو خیانت کوي"

اوس نو راځی چی هاغه سوال ځواب کړو چي آیا دا کس چی ورځتیا ونه لري د جعلي سند یا شهادت نامي په ذریعه وظیفه واخلي معاش یی حلال دی..؟

ځواب :که چیرته دا کس د دغی وظیفی ورځتیا ونلري نو معاش یی حرام دی او دا کار یی دوکه ده چی دوکه هم حرامه ده.کما صرحه فتاوی بنوریه.والفتاوی دارالعلوم دیوبند.

یادونه :د جعل سازۍ مخه نیول د نظام سره سره د اداری د مشر مسؤلیت هم دی{کومی اداری نه چی دا سند اخیستل کیږي }او کوم خلک چی دغه کار کی څه قسمه تعاون هم وکړي دا ټول په دی ګناه کی شامل دي ځکه چی الله تعالی په بد کار کی د تعاون کولو څخه منعهکړی ده لکه چی فرمایي..

وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿مائده/۲)

ترجمه "او تعاون مه کوئ د ګناه او سرکشۍ په کارونو کی"

اوس چی هر څوک په دغه کار کی تعاون کوي نو هغه هم په دغه ګناه کی برابر شریک دی.

یادونه:دا خبره د دلایلو په رڼا کی روښانه شوه چی جعلي سند جوړول شهادت زور، دوکه ، خیانت ، دروغ ویل، او د بل حق خوړل، دي او داټول کبیره ګناهونه دي چی ځان تری ساتل لازمي دي،د یو سند لپاره دومره لوی او کبیره ګناهونه د خدای تعالی غضب ته دعوت ورکول دي،او نظام کی خدمت او یا تحصیل د علم د الله د رضا کولو لپاره کیږي نه د ناراضه کولو لپاره.

بله خبره دا چی  شهادت نامه ورکول تحریري ګواهي ورکول دي اوس که څوک یی  اهل وي نو فبها والا دا کار ډیر زیات ناوړه او لوی جرم دی د اداری مسؤلین باید ډیر زیات احتیاط وکړي.

اللهم احفظنا منه

اقول قولی هذا وستغرالله لی ولکم

مولوی احمد علی نقشبندی   فاضل جامعه دارالعلوم حقانیه

د اړیکی شمیره: 0093749656274